# واخان

د خښې کولتوري ټولنې خپرنی ارګان

دویم کال، څلورمه ګڼه، پرله پسې (۱۰) ګڼه، تله لړم، ۱۳۸۳ هـ.ش





- خالص بابا مړ که ....
- افغانستانیان څه غواړي!
- مصلحتي نظام جفا ده... ګیلاني
- ملي مشارکت که ...
- ربنتیا خبرې!

عکس افغان میډیا نړیواله

Magazine
# WAKHAN

**Address:**
Flat No.: 208, 2nd Floor, Gulhaji Plaza, University Rd.
Peshawar, Pakistan.
e-mail: wakhan_weekly@hotmail.com
Tel: 585349

د امتیاز خاوند:
د خښي کولتوري ټولنه
چلوونکی:
اجمل اټک "یوسفزی"
استازي:
امریکا: هلال یاسیني
ناروې: میرمن سارا بیاباني
کمپوز: د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز
کمپوزر: محمد عذیر اکبري
بیه:
د یوې ګڼې ۱۵ افغانۍ
۲۰ کلدارې
په نورو ملکونو کې ۵ ډالر



._( یوه هیله!)_.

د واخان اداره له ټولو ښاغلو لیکوالو هیله کوي چې د خپاره شویو مطالبو پر ځای د واخان اداره پر نویو لیکنو ونازوي.

په درنښت

## واخان

**د ملي او اسلامي ارمان له مخې د یوه روڼ سباوون په هیله خپرېږي**

● مدير صفي الله خوګیانی



# ملي مشارکت

## که توپك سالاره ديموکراسي

د ګران هېواد د ناورين په تېرو پنځه ويشت کلونو کې په کراتو ښايي په هر کال کې څو څو ځلې مې قلم اوچت کړی او د سپينو پاڼو پر مخ مې خپلې سمې او ناسمې اندېښنې ليکلې دي خو تر دوهم ځل لوستلو وروسته مې داسې انګيرلې ده چې ليکل او قضاوت کول زما تر وس پورته کار دی نو ځکه به مې خپلې ليکنې وشلولې او باطله دانې ته به مې واچولې.

په دې وروستيو ورځو کې د افغانستان نوي ټاکل شوي جمهور رئيس ښاغلی حامد کرزي ته د بېلا بېلو خبري رسانيو او د عامه خبرتيايي وسايلو له لارې د ملي مشارکت پر اساس د کابينې جوړولو تجويزونه ورکول کيږي ما هم يو ځل بيا هوډ وکړ چې که ليکوال او اهل نظر نه يم افغان خو يم. د افغاني هويت په درلودلو سره مې ځان ته دا حق ورکړ څو د خپل هېواد د راتلونکي په هکله خپلې اندېښنې د خپل ولس سره شريکې کړم.

هغه دا چې د ۲۰۰۱ کال په وروستيو مياشتو کې کله چې د امريکا جمهور رئيس جارج بوش هوډ وکړ څو د طالبانو امارت د اسامه بن لادن د نه سپارلو په تور ړنګ او پر ځای يې يو ديموکراسي پلوه نظام رامنځ ته کړي د ملګرو ملتونو امنيت شورا د بشر د حقوقو بېلا بېلو سازمانونو افغاني ټولنو او آن د امريکا يو شمېر ادارو هم وويل چې د طالبانو مخالف وسلوال مقاومت د خپل حکومت په دوران کې پر افغان ولس داسې تېرې کړې دي، چې افغان ولس يې د طالبانو سخت دريځه نظام منلو ته اړ کړی و، که چېرې دغه ډله د طالبانو تر نسکورېدو وروسته بيا په هېواد مسلطه شي نو بل ناورين به رامنځ ته کړي. د دغو اندېښنو په غبرګون کې دا مريکا حکومت ډاډ ورکړ چې د طالبانو تر سقوط وروسته به شمالي ټلوالې ته کابل ته د ننوتلو اجازه ورنکړي کله چې د بګرام سره نژدې د طالبانو لمړی جنګي خط مات شو او طالبانو د امريکايي بمباريو له وجې کابل پرېښود او د کندهار په لور وخوځېدل نو شمالي ټلواله د امريکايي هوايي ځواك په مرسته په کابل قبضه وکړه. استاد برهان الدين رباني شړل شوی حکومت پر کابل مسلط کړ. سپينږ ماڼۍ او پنټاګون د دغې پېښې څخه ناخبري ښکاره کړه خو د ائتلافي قواوو امريکايي قوماندان وويل چې دا کار ما کړی دی. د همدغه لمړي سره د امريکا حکومت د سياست، ګفتار او کردار دوه مخي د افغانستان په هکله پيل کيږي. هغه کوم چې د يو شمېر دوه مخيزو سياستونو بېلګې د ګرانو لوستونکو د زياتو معلوماتو په خاطر وړاندې کړم.

کله چې د مخکيني پروګرام سره سم د يو شمېر افغاني ډلو چې شمالي ټلواله يې په سر کې وه د جرمني په بن ښار کې د نړيوالو څارونکو آزادي نړۍ او په سر کې د امريکا متحده ايالاتو خارجه وزير کولن پاول په ګډون کانفرانس جوړ شو. په نوموړي کانفرانس کې يو پريکړه ليك چې د لنډمهالې او منځ مهالې ادارې لپاره يې د يو شمېر چارو د ترسره کولو په باب او د نوموړې ادارو د چارو د نظارت په هکله پريکړې پکې وشوې نړيوالو او افغانانو ته دا هيله ورکوله چې ګوندې راتلونکی به يې روښانه وي کله چې د لنډمهالې ادارې مشر تابه هيئت د بن کانفرانس د افغاني ګډون کوونکو د انتخاباتو پر اساس وټاکل شو نو امريکايانو او شمالي ټلوالې وويل چې دوی له وړاندې په دې سلا شوي دي چې د ادارې مشر به حامد کرزی او د يو شمېر ډېرو مهمو کليدي وزارتونو وزيران به پر هېواد د مسلط شمالي اتحاد د حکومت غړي وي دغه پټ سازش د کانفرانس شريکوافغانانو ونه منلو، خو بالاخره يې د سپيده داغ پر وخت د خوب په کوټو کې ورباندې ومنلو د بن پريکړه ليك په هېواد کې د باور فضا رامنځ ته کولو لپاره د پام وړ تکي په نظر کې نيول شوې وه چې زه يې يو څو ټکي د ګرانو لوستونکو لپاره شمېرل ضروري ګڼم

۱. د کابل د ښار څخه به د شمالي ټلوالې قوتونه ویستل کیږي.

۲. د کابل ښار امنیت به د ملګرو ملتونو تر نظارت لاندې نړیوال ځواك ایساف په غاړه اخلي.

۳. په کابل کې د مرکزي حکومت په لوړو چوکیو به ټکنوکراتات مقرریږي.

۴. د کابل څخه بهر او د لیرو پرتو سیمو ملیشیا قواوې به وسلې پر مځکه ایږدې او د ملي پوځ قوتونه به يې ځای نیسي.

۵. په ټول هېواد کې به کار اهل او ټکنوکرات کسان د ادارو په سر کې مقرریږي او دا ډول یو شمېر نورې دنډې لنډمهالې او منځ مهالې ادارې ته چې ټول عمر يې د اساسي قانون د تصويب د جرګې تر ټاکنو پای ته رسیدلو باید په عمل کې ترسره شوي وای چې په ډېر تاسف سره باید ووایم چې په دغه دوره کې یوازې دوی لوی جرګې رابلل شوي او تش په نامه یو دوه قوماندانان د خپلو چوکیو څخه لیرې کړل شوي او د یو نیم لك قومي ملیشو له جملې څخه چې باید بې وسلې شوی وای یوازې ۲۶ زره کسان داسې بې وسلې شوي چې زیات شمېر يې د دوهم ځل لپاره وسلوال شوي دي.

که د بن پرېکړې په تیرو دوه نیمو کلونو کې تر یوه حده عملي شوي وای نو یقین لرم چې اوس به د اساسي قانون د جمهور رئیس د صلاحیتونو پارکې په ورانديې د یو بل متبادل (ملي مشارکت) پر بنسټ جوړ شوي نظام ته هیڅ اړتیا نه لیدل کیده. د ملي مشارکت پر بنیاد د نوي حکومت د کابینې جوړولو وړاندیز تر ټولو د مخه امریکایې منابعو هغه وخت وکړ چې د انتخاباتو وروستنۍ نتیجې لا نه وې ځرګندې شوې تردې وړاندې یوه بله ډېره مهمه موضوع دا ده چې د افغانستان د انتخاباتو په قانون کې ذکر شوي چې کوم خلك چې لاس يې د ملت په وینو ککړ وي د لوی جرګې او جمهوري ریاست په انتخاباتو کې برخه نشي اخیستلای. خو په عملي ډګر کې د لوی جرګې زیات شمېر انتخابي او انتصابي غړي ټوپکسالاران وو د جمهوري ریاست د ۱۸ کاندیدانو څخه هم ګڼ شمېر ټوپکیان وو.

زما په اند د دې ټولو ګډوډیو اصلي عامل د بن د پریکړو څخه سرغړونو کې نغښتې دي د بن پر پریکړو عمل کول د موقتي او انتقالي ادارې دنده وه خو د ملګرو ملتونو د سر منشي خاص استازي او د امریکا متحده ایالاتو جمهور رییس خاص نماینده چې زمونږ دهېواد اصلي چاراوکي پېژندل کیږي وجداني او حقوقي دنده وه څو د تېرو څه کم درې کلونو په اوږدو کې منځ مهالې او لنډمهالې ادارې د بن د توافقاتو په عمل کې پلي کولو ته هڅولې وای بلکه د جمهور رئیس بش د نماینده په توګه د دهشتګردۍ خلاف ائتلافي قواوو په مرسته يې افغان اداره کې هغه خلك چې د بن د توافقاتو د ښه عملي کېدو په لاز کې خنډ ګرځېدل، افغان اولس او نړیوالو ته د تعهد په بدل کې تنبیه کړي وای. امریکا دخپل یو بلډنګ د نړېدلو او پنځه سوه امریکایي او بهرنیو وګړو د مړه کېدو په بدله کې په ټوله نړۍ په خاصه توګه زمونږ په هېواد او سیمه کې د تروریزم خلاف جنګ پیل کړ خو زمونږ د هېواد د زړه د کابل ښار نړوونکي او تر پنځوس زره زیاتو هېوادوالو قاتلان يې چې ټول افغان ولس يې د محاکمې غوښتونکي دي د تیرو درې کلونو په موده کې دومره ځواکمن کړل چې اوس په راتلونکي نظام کې د ملي مشارکت په نوم د توکمیزو ملیشاوو چې اوس يې د دفاع وزارت په چوکاټ کې هم داخلې کړې دي تر سیوري لاندې د راتلونکي منتخب حکومت پر وزارتونو تکیه ولګوي او په دې ډول په راتلونکي پارلمان کې د خپلو پلویانو د ټاکنو لپاره لار هواره او د دیموکراسۍ په نوم ټوپکسالارۍ د نړیوالې ملګرتیا په مرسته پر لاس ترلي افغان ولس د پنځو کلونو لپاره ومني که دغه ډرامه د ملي مشارکت د سرك نقشه په عمل کې پلې شوه هغه امیدونه او هیلې چې د بن کانفرانس د پریکړو تر امضا کیدو وروسته د افغان ولس په زړونو کې راټوکېدلې وې او په تیرو څلور کلونو کې ورځ په ورځ مخ په تتېدو روانې وې د نوي ټوپکسالارۍ دیموکراسۍ په سیوري کې به په ناهیلیو بدلې شي ملکي نظام به د بهترۍ پر ځای د لاخودسرۍ په لور د نړیوال ائتلاف په مرسته روان شي خو امنیت به ورځ په ورځ د خرابیو په لار درومي په داسې حال کې دي د افغان ولس یو رب مل شي.

و ما توفیقی الابالله و علیه توکلت.

[په تېر پسې]

• میرمن فاطمه ګیلاني

# شهید محمد موسی شفیق



## دریم ځپرکی:

شفیق افغانستان ته د باصلاحیته قانون پوه په حیث راستون شو. د هغو څو تنو له ډلې څخه یو تن دی و چې د اسلامي قانون او نړیوال قانون په ساحه کې روزل شوی و.

(۱۹۵۷) کې د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي پوهنو پوهنځي کې استاد شو.

د شفیق شاګردان ښاغلی شفیق د یوه بریالي استاد په حیث یادوي، ارواښاد شفیق ډېر ښه پوهېده چې خپله پوهه (علم) څنګه دوی ته انتقال کړي او همدارنګه هغه ښاغلی شاګردانو سره شخصي اړیکو ته ډېر اهمیت ورکاوه.

د هغه یو شاګرد ډاکټر (S.N) طرزي وایي:

هغه ښاغلی به تل د شاګردانو سره په غم او د ضرورت په وخت کې حاضر و، زه نه یوازې هغه د یوه استاد بلکې د یوه ډېر ښه ملګري په حیث یاد ساتم، د نورو استادانو سره یې ډېر توپیر درلود، هغه به خپل شاګردان ډېر هڅول چې د هېواد راتلونکي لپاره ډېره لیوالتیا وښیي. پر ځان باور او د مسوولیت احساس یې د درس برخه وه.

ښاغلی N.Q هاشمزی چې وروسته د عدلیې په وزارت کې د هغه سکرتر هم شو. نوموړی د ارواښاد شفیق د کابل پوهنتون د استادۍ وخت یادوي او لیکي.

شفیق خپل فعالیتونه د تدریس پورې محدود نکړل.

شفیق هېواد ته په راستنیدو خپل آندود (افکار) د اشعارو او مضامینو په بڼه د هېواد په نشراتو کې خپاره کړل. پېغام د هغه شعرونو ټولګه چې په ۱۹۵۹ کې خپره شوه، د مختلفو مسایلو په هکله یې لیکل وکړل. په ټولنیزو لیکنو کې یې خپله ټولنه خپل وروسته پاتې والي ته خبر کړه. په اشعارو یې ځوان کول وهڅاوه چې پرمختګ وکړي. مسوولیتونه حس کړي او په ټولنیزو چارو کې رغنده برخه واخلي. په عمومي ډول د هغه په لیکنو کې د اسلامي نړۍ او افغانستان په باره کې ژورې اندېښنې څرګندې شوې وې. هغه د موجوده سیستم د اصلاح په لټه کې و. د الفلاح په نوم یې مجله راوویسته، چې اسلامي او اجتماعي مسایل، د عدالت د غړي پورته کول، مسوولیت نه د غاړې اېښودو په اړوند او نورو مهمو مسایل په کې څېړل کېدل. د دوی حقیقي پېغام د هغه قانوني اصلاحاتو لپاره د عامه ذهنیت تیارول و کوم چې ژر پیلېدونکي و.

په ۱۹۶۰ کې د عبدالصمد حامد په ګډون یې یوه د وکیلانو ټولنه جوړه کړه. دا فورم په افغانستان کې په خپل ډول لومړی اداره وه، مخکې د دې نه چې به د چا مدافع وکیل ته ضرورت پېښ شونو د متقاعدو قاضیانو یا کلیوالو ملایانو نه به یې مرسته غوښته.

شفیق د خپل ماموریت په دوران کې (۱۹۶۶-۱۹۶۳) د عدلیې وزارت کې یې خپل حقیقي لیاقت وښود.

دې ډېر زر د خپل علم او تیز ذهن په سبب د افغانستان یو تکړه او نوښتګر قانون پوه وبلل شو. پدې وزارت کې د هغه ښه صلاحیت ښکاره شو چې محمد ظاهر شاه یې هم ستاینه وکړه. تر ټولو پیاوړی بدلون چې شفیق د عدلیې وزارت کې راوست د قانون تدوین و.

دې کار ضروري اجراات او اعتماد ته ضرورت درلود، یوازې هغه چا دا کار ترسره کولای شو چې زړو او دودیز قانون پوهانو ته، د هغه صلاحیت د قبول وړ و.

دا مسایل په نولسمه او شلمه صدۍ کې اوج ته ورسېدل. دا خنډونه په افغانستان کې هم ولیدل شول. افغاني واکمنانو څو ځلې زیار وویست چې قانوني اصلاحات راولي مګر ګټه یې ونکړله نو له دې کبله شفیق لومړنی قانون پوه و چې اجراات یې وکړل او داسې حساسه او مهمه مسئله یې حل کړه.

شفیق د عدلیې په وزارت کې د قانون (د مدیریت، مدیر وټاکل شو د عدلیې وزیر شمس الدین مجروح پوهڅاوه چې د مصر د قانون پوه ماهر راوغواړي چې

د قانون په ليکلو کې ورسره مرسته وکړي، د شفيق دا خبره ومنل شوه

شفيق د عدليې معين شو، د عامه جزايي قوانينو په تدوين يې پيل وکړ، شاه هيله درلوده چې د هېواد لپاره د نوي اساسي قانون طرحه وړاندې کړي. د بلې خوا شاه نه غوښتل چې دا کار د هغه د تره زوی محمد داود خان ترسره کړي. د خپلې هيلې د ترسره کولو لپاره يې کميسيون وټاکه، شفيق يې غړی او سکرتر شو. عبدالصمد حامد چې د دې کميسيون غړی و ددې دورې داسې يادونه کوي:

مونږ د نوي اساسي قانون د طرحې په ترتيبولو کې سره يوځای شو، البته دا زما د ژوندانه غني دوره وه د شفيق هيله دا وه چې داسې يو اساسي قانون ترتيب شي چې د يوه لوري ترقي او پرمختګ ته لاره هواره شي او د بل لوري اسلامي او ملي نورمونو ته زيان ونه رسيږي. ښاغلی حامد ليکي:

د لومړي ځل لپاره د اسلام نوی بُعد وښودل شو، دې کار جرائت کلکې عقيدې او د تولو نه پر ځان ويسا ته ضرورت درلود. دا بايد وويل شي چې هغه ګوتنيونې چې پدې دور کې کېدې د سياسي اړخه يې مذهبي اړخ درلودوه. (۲۸)

لبنان د افغانستان سره نږدې تجارتي اړيکې درلودې

په قاهره کې شفيق نه يوازې په ډيپلوماتانو او دولتي مامورينو کې محبوبيت درلود بلکې په نورو پوهانو کې يې هم قدر پيدا کړی و. د لوی ليکوال طه يسين نه نيولې تر افسانوي کلاسکي سندرغاړې ام کلثوم پورې د هغه ملګري و، چون په عربي ژبه ښه مسلط و، ده سره د پخوانيو اړيکو په درلودلو سره شفيق د مطبوعاتو سره ښې اړيکې درلودې. د سفارت په وخت کې شنيو په مصري مطبوعاتو کې د افغانستان په هکله ډېر زيات نشرات کړي دي. په مصر کې د شفيق د تحسين وړ کارنامه دمصر او ايران ترمنځ د روابطوعادي حالت ته راوستل وه، کله چې د دواړو هېوادونو ډيپلوماتيکي اړيکي پرې شوې افغاني سفير د دريمګړي دنده ترسره کړه، تر هغه چې په (     ) کال کې بېرته د دواړو هېوادونو روابط عادي شول

شفيق د سفير په حيث په قاهره کې د افغاني محصلينو د تعليم او ښېګړې په هکله ډېره ليوالتيا درلوده په هره اونيزه اجندا کې به يې د هغوی سره د ملاقات وخت او ځای ټاکلی و چې د مشکلاتو يې ځان خبر کړي. د سفيرانو دوديزه اجندا کې به ليدنې د اخترونو په ورځو د هېواد ملي ورځو او يا نورو خاصو وختونو کې وې خو شفيق دا دود مات کړ د هېواد د شاګردانو سره به يې هر وخت ليدل. چې د شفيق دغه روابط تراوسه يادېږي

په ۱۹۷۱ د ډاکټر عبدالظاهر په کابينه کې شفيق د بهرنيو چارو وزير شو. دا لومړی ځل و چې يو (عادي شخص) و چې دې مقام ته ورسيده. شفيق د دې مقام په قبلولو زړه نازړه و، د هغه نږدې ملګری او دوست ښاغلی سيد احمد ګيلاني وايي:

شفيق عقيده درلوده چې د هغه په سياسي ژوندانه کې وزير کېدل مخکې له وخت نه دي.

کله يې چې دنده اشغال کړه، پرېکړه يې وکړه چې د وزارت په دننه کې ځينې تغييرات راولي. د ګاونډيو سره اړيکې ښې کولې او د دې لپاره چې د روسانو تاثيرات کم کړي شفيق علاقه درلوده چې د ناپېلتوب دوديز سياست خپل کړي. په حقيقت کې هغه د ناپېلتوب په غورځنګ کلکه عقيده نه درلوده. شفيق غوښتل چې د دې تحريک نه د يوه لارې (ګاډي؟) کار واخلي او افغانستان د پخواني شوروي اتحاد د نفوذ د ساحې نه وباسي. د هغه وروستي هيله دا وه چې افغانستان د اسلامي هېوادونو سره نږدې کړي. دا پاليسي نه يوازې د شفيق بلکه د ګرد نظام د پرځېدو لامل شوه.

د شفيق دې پاليسي په پرچميانو کې غوغا پيدا کړه، کمونستي ګوندونو د شفيق په وړاندې کمپاين پيل کړ او شفيق يې د اخوان المسلمين په غړيتوب تورن کړ.

په وزارت کې يې ساختماني کارونه پيل کړل. شفيق وزارت د نوي او موډرن تعمير نه دستور قصر ته يوړ، دا قصر د امير حبيب الله خان په وخت کې د باندينيو چارو وزارت ته خاص جوړ شوی و، چې وروسته ترې د ګودام کار اخستل کېده. د تعمير پخوانی شان او شوکت راژوندی شو. پدې وسيله شفيق غوښتل چې د وزارت ډېر پخوانی دود

۲۸: د صمد حامد صحاحبه اساسي قانون

چې د شفیق د وزیر کېدو نه په لسهاوو کلونه مخکې موجود وه راڅرګند کړ.

کوم اصلاحات چې شفیق د وزارت په اداري او د بیوکراسي نظام کې رامنځته کړل، اساسي اصلاحات وو. په ښه شان سره شفیق په ۱۹۶۴ کال کې په اساسي قانون په یوه ماده کې (۱۰۲ ماده) ورزیاته کړه چې مادي د قانون تدوین او انکشاف ته لار هواروله.

ښاغلی قاسم هاشمزی لیکلي:-

د قانون دې مادي قانون جوړونې لپاره پوره لاره خلاصه کړه او هغه شی و، چې شفیق غوښتل او د ټولنې ضرورت و.

هاشم زی زیاتوي:

محمد موسی شفیق د وزیرانو شورا ته ضروري تشریحات او توضیحات وړاندې کړل. هغه په لویه جرګه کې د اساسي قانون د تصویب په خاطر د اساسي قانون د طرحې د کومیټې استازی وټاکل شو. دا انکشافات د دې سبب شول چې عدلیه د دولت د نورو قواو یعنې د مقننې او اجرایې نه استقلال ترلاسه کړي. شفیق ۱۹۶۶ کې د عدلیې د نوي وزیر عبدالحکیم طیبي سره د اختلاف په سبب د عدلیې وزارت پرېښود. خو کله چې شفیق وزارت پرېښود جزایي او عامه قوانین یې تصویب شوي او د اجراء لاندې وه.

(۱۹۶۶-۱۹۶۸) پورې شفیق د بهرنیو چارو وزارت کې مشاور و. د مشاورت د کارونو په هکله یې معلومات لږ دي خو د وروستیو انکشافاتو نه داسې پایله اخستې شو چې شاه غوښتل راتلونکې کې یې بیا د بهرنیو چارو وزارت ته اماده کړي. د تعجب خبره نه وه د یو کامیاب دیپلومات په حیث کار کول و. یو قانون پوه د عدلیې وزارت نه د بهرنیو چارو وزارت ته تبدیل شو. د بهرنیو چارو د وزارت زړو (پخوانیو) مامورینو د شفیق هر کلي وکړ. هغه موټر او دفتر چې مشاور ته ورکول کېده شفیق ته ورنکړل شوه.

خوانو دیپلوماتانو چې د شفیق ملګري او یا شاګردان وو شفیق ته ښه راغلاست ووایه. ښاغلی حسرت د شفیق یو همکار وایي

یو زیات شمېر خلک به هره ورځ شفیق صاحب لیدو ته راتلل. دا د خارجه چارو د وزارت مامورینو ته یوه (پېښه) واقعه وه ځکه هغوی د عامو کتنو سره په تماس کې نه وو.

چې دغه وخت کې شفیق د فرانسوي ژبې د زده کولو لپاره فرانس ته ولېږل شو. نوموړي په درې میاشتو کې دغه ژبه زده کړه. دغې پېښې (زکاوت) ډېر خلک په افغانستان او فرانسه کې حیران کړل.

په ۱۹۶۸ شفیق په مصر کې سفیر شو او په عین وخت کې یې په لبنان، لیبیا، سودان او ځینو نورو افریقایي هېوادو کې د افغانستان استازیتوب هم کاوه، د قاهرې نه وروسته به هغه خپل زیات وخت په لبنان کې تېراوه.

د دې نه مخکې چې اصلاحات پیل کړي د خپلو پخوانیو مامورینو او شاګردانو نه یې وغوښتل چې د اصلاحاتو لپاره نظریات او وړاندیزونه ورتسلیم کړي. ځکه چې هغوی په دې وزارت کې ډېر وخت تېر کړی و او د ورځنیو کارونو سره اشنا وو.

د باندنیو چارو د وزارت، مامورین زیاتره اشراف او معتبر وګړي وو، د دندې د ترسره کولو لپاره یې نظم او مسوولیت ضروري نه ګڼل کېده. د دې کار د اصلاح لپاره یې د حاضرۍ او وظیفه پېژندنې لپاره سخته پالیسي جوړه کړه. ترفع نوره د خدمت د دورې پورې تړلې نه وه، د ترفع لپاره امتحانات شرط وټاکل شو.

د دې لپاره چې مامورین خصوصاً نوي دیپلوماتان ښه وروزل شي په وزارت کې یو انستیتیوت تاسیس شو. پدې کې د نړۍ تاریخ د نړیوالو اړیکو، جغرافیې. ژبو او نور درسونه ورکول کېدل، دې انستیتیوت به غونډې او کنفرانسونه دایرول چې د مامورینو لپاره ډېر ارزښتناک او ګټور و. کوم مامورین چې به د نړیوالو کنفرانسونو راستان شول د هغوی نه غوښتل کېدل چې خپل تجارب خپلو همکارانو سره شریک کړي.

د ځینو سفیرانو چې به ماموریت پای ته ورسید او هېواد ته به راستانه شول ترې به غوښتل کېدل چې د میزبان هېواد په حالاتو معلومات ورکړي.

د لومړني ځل لپاره د افغانستان په خارجه وزارت کې د اطلاعاتو بیرو جوړه شوه. دې بیرو نورو هېوادو ته د افغانستان د دولت د رسمي ژبې حیثیت درلود.

د ډاکټر عبدالظاهر حکومت ته چې شفیق

غړی و وچکالي په میراث کې پاتې وه. دې وچکالۍ افغانستان ویجاړ کړی و کړهنه چې د افغانستان د اقتصاد د ملاتیر جوړوي. سوځېدلې وه او د غربي او شمالي سیمو اوسېدونکي یې ډېر اغېزمن کړي وو. د غلو دانو نشتوالی د بنیادي اشیاو؟ قیمت درې سوه فیصده لوړ شوی و. "په نږدې تاریخ کې یې د ګاونډیو ولایاتو خلك اړ شول چې مرکز ته د ډوډۍ د لټون پسې راشي. دوی خپل ټول اجناس خرڅ کړي و، تردې چې د خپلو اولادونو په خرڅلاو یې لاس پورې کړی و. د حکومت مخالفینو او چپیانو په ډاکتر ظاهر او حکومت نیوکه کوله چې د ستونځو د حل لپاره وړ تدابیر نه شي نیولی. کله چې لومړي وزیر پرېکړه وکړه چې خپل مرستیال متاثره سیمو ته ولیږي مګر دا اقدام بې وخته وو. د چپي سازمانونو په واسطه شورش پیل شو، د صمد حامد موټر په ډبرو وویشتل شو. نوموړی مجبوراً بیرته راوګرځېدو. (۲۸)

شفیق ابتکار وکړ. ملګرو ملتو ته ولاړ چې نړیوال د افغانانو د مشکلاتو نه خبر کړي. هغه عقیده درلوده چې افغانستان د دې طبعي آفاتو بوج نه شي زغملی، نو په افغانستان کې یې د بېړني حالت اعلان وکړ. په خپله وینا کې یې د افغانستان روان حالت ډېر ښه بیان کړای شو، چې غړیو هېوادونو ورته مثبت ځواب ورکړ.

یوازې د امریکې متحده ایالاتو دوه لکه ټنه غنم بسپنه اعلان کړه. همدارنګه نورو هېوادونو هم د یاد وړ مرستې اعلان کړې[۳۹]، تردې د نړۍ هېوادونو مرستې وکړې چې پدې کال غله د احتیاجه اضافه شوه.

خو د تعجب خبره دا ده چې هغو ورځپاڼو چې په داکتر عبدالظاهر دا ګوتنیونه کوله چې د مشکلاتو د هوارې لارې نه لټوي. بیا یې د شفیق کاریکاتور، رسم کړ چې د مرستو سوالګوي.

په هر ډول د اولس د اعتماد لاسته راوړلو وخت تیر و. داکتر عبدالظاهر مجبور شو چې اکتوبر ۱۹۷۲ کې استعفا ورکړي. شاه سمدلاسه د شفیق نه وغوښتل چې کابینه جوړه کړي. په یوه (استثنایي) مرکه کې ما له شاه پوښتنه وکړه چې تاسي څه مهال پرېکړه وکړه چې

۳۹: د حسرت مرکه

شفیق د صدراعظم په حیث وټاکي

ما شفیق د عدلیې په وزارت کې ډېر وړ او ښه ولید چې د قانون په تدوین کې یې کار کاوه. زه د هغه د شخصیت او په قانون کې د هغه پیاوړې پوهې ډېر متاثر کړم. او زه ښه پوهېدم چې یو وخت به لوړ دولتي پوست ته رسیږي. مګر دا په دومره لږ عمر کې. یعنې په ۴۲ کلنۍ کې لومړي وزیر شو

د دې پوښتنې په ځواب کې چې کله او ولې مو پرېکړه وکړه چې شفیق وزیراعظم شي؟ شا وویل

"یوه شپه د اروپا د رسمي سفر په پای کې د باندنیو چارو وزیر او د صدراعظم معاون عبدالصمد حامد سره ناست وم په روانو ستونزو، داخلي ناکراریو چې د چپیانو لخوا پیدا شوې وې اقتصادي ګړاونه او د ګاونډي هېواد پاکستان په روابطو باندې مو خبرې کولې. ډاکتر حامد د خپل خیرکتیا او اخلاص زیاته بدبیني وښوده. د دې خبرو لړۍ د سهار تر درې بجو وغځېده.

کله چې بیرته ګرځېدم شفیق زما سره ملګری شو. زه یې قانع کړم چې ستونزې د تشدد باوجود کېدای شي حل کړو. د شفیق په اند د ستونزو د حل ښه لاره دا وه چې ترجیحات وټاکل شي. هغه ټینګار کاوه چې مونږ باید په کلك عزم وړاندې لاړ شو، د ګوتنیونکو په ګوتنیونو باندې باید وخت ضایع نکړو ځکه باید وکړو چې اساسي او بنیادي کړنه وي. د هغه قوي لوړ فکر او اداري پیاوړتیا یو پله بیا زه نهایت متاثره کړم زه پوه شوم چې هېواد د شفیق غوندې یو شخص ته اړتیا لري. (۴۰)

ښاغلی شاه زیاتوي:

د یادولو وړ ده چې پدې سفر کې ما د دوو سیاسي شخصیتونو لخوا چې هر یو د مختلفو ایډیالوژیو لاروي و د خپل غوره کړای شوي (منتخب) خارجه وزیر ستاینې اوریدلې وې چې یو یې پیاوړی سیاست پوه سرالك ډګلس (۱۹۰۳-۱۹۹۴) و. د یوې رسمي غونډې وروسته نوموړي راته داسې وویل، ستاسې ځوان خارجه وزیر نه یوازې په کورنیو چارو کې ډېر زیرك دی، بلکې د منځني ختیځ په باره کې هم د شاباسي وړ دی په همدې سفر کې چې زه ماسکو ته ولاړم الکسي کاسګین د ماسکو لومړی وزیر (۱۹۸۰-۱۹۶۴) ده هم د شفیق ستاینه وکړه ... نور...

۴۰: د ظاهرشا مرکه



ددې ګمڼې يادونه:

# افغانستانيان څه غواړي!

● اجمل اټك يوسفزی

په افغانستان د سياسي تيري، شمار اوس له تاريخ پوهانو هم هير او يا په شك کې دی چې څو واره او د کومو قومونو له خوا په دې بې وزله قوم شوي دغه تاريخي هېرېشوي او يا يادي شوي پيښي تولې ځانته پخپله لاملونه لري، يو وخت په نړۍ کې ځينو صنعتي هېوادونو د خپلو اړتياوو د پوره کولو په نيت د يو شمېر هېوادونو او ځايونو په لاندې کولو بوخت وو او ډيرې ځمکې يې لاندې کړې هم وې، او د خپلو اهدافو په ګټه يې ترې کار اخيسته. چې البته دا بحث ډېر لوی دی او په هسدې ځای يې پرېږدو. دويمه لويه ډله دا وه. چې د نړۍ پر مخ يې تل د حق پر وړاندې ستونزې او کړاووسه را پېښ کړي دي. په ځانګړې توګه د اسلام د سپېڅلي دين د ظهور او اعلان نه را واخله ان تر نننه پورې، د اسلام دښمنانو په رنګارنګ پلمو. تباپو. نومونو او شکلونو د اسلام دښمني او د مسلمانانو د بې اتفاقۍ زيار ويستی، چې د عالم کفر دغه دسيسې لادوام لري، او تر ټولو لوی ارمان يې دا دی چې څنګه د افغانستان په دين مين او منور خلك له دغه الهی نعمت او رحمت (اسلام) نه بې لاړې او بې برخې کړي. چې دغه بحث هم پخپل ذات کې ډېر لوی دی د دې په خاطر چې اصلي موضوع ته لاړ شم په همدومره سريزه بسيا کوم.

## فرهنګي يرغلونه:

مخکې موږ ياده کړه چې په ګران افغانستان دومره تيري شوي چې اوس ورته بې شمېره ويلای شوو او دا ټول تيري په بېلا بېلو شکلونو او د جلا جلا غوښتنو او اهدافو په بنسټ تر سره شوي دي. چې له بده مرغه دغه تيرې نه يوازې نن کېږي بلکې له کلونو راهيسې پيل شوي، او په تېره بيا د کرغيړن انقلاب را وروسته ډاکتر صاحبان وايي، بدن چې کمزوری او ضعيف شي بيا پرې ډېر کم مکروب هم ډېر اغيز او تاثير کوي، په دا درې لسيزو کې زمونږ ښکلي او يو موتی وطن د دښمنانو له خوا ډېر برباد او تباه شو او لا اوس هم زمونږ د ابدي دښمنانو زړونه ساړه شوي نه دي، يعنې په دې مانا چې له سړيو د جنګي او علمي ميړونو يې خلاص کړو خو اوس يې له پخوا هم ډېره ګرمه زموږ په ملي وياړونو او تاريخي څليو او نومونو پسې را اخيستې ده.

موږ نن د ډېرو دښمنانو. د رنګ رنګ برنامو او غوښتنو تر څنك د دوه ډوله ډېرو مضرو دښمنانو سره لاس او ګريوان يو.

## لومړی ديموکراسي او ديمرکراتان:

دا منلې خبره ده، چې افغانستان هم د نړۍ پر مخ يو وتلی. ځلېدلی او د لمر په څېر روښانه هېواد دی. دا چې دا پخپله د نړۍ پرمخ يو ثابت هېواد دی او اوسيدونکي يې د نړۍ پرمخ ژوند کوي نو طبيعي ده چې د نړيوالو سره به راشه درشه هم لري، د نړيوالو په ژبه او قانون به هم پوهېږي او په خپله به هم يو قانون او په اصطلاح ضابطه حيات لري په داسې حال

کې چې د تاریخ په ګواهی ویلای شوو، چې تمدن او مدنیت هم په لومړي ځل له همدې خاورې او اولس له خوا شا او خوا اوسیدونکیو ګاونډیانو او حتی نړیوالو ته ورغلی دی، چې له ښه شامته د نړۍ د بېلا بېلو دورو او تمدنونو، پیل له همدې ځایه نورو ته شوی. زمونږ تاریخ په دې هم ګواه دی چې د اسلام د سپېڅلي دین وړانګې هم له همدې خاورې او د همدغه مېړني تبر د نیکونو او اجدادو له برکته ډېرو نورو سیمو او قومونو ته ورسېدلې دی.

سره د دې چې انسان یو ټولنیز مخلوق دی او هېڅوک له دې حقیقت څخه سترګې نشيٰ پټولای چې ګوندې دوی دې د یو بل سره راشه درشه، ناسته پاسته، ښه، بده او یا نورې مذهبي، فکري او کلتوري، اړیکې ونه لري، د دې ټولو سره سره چې انسانان پخپلو کې سره رنګارنګ اړیکې او اړتیاوې لري مګر دا هم نه شو هېرولای چې همدغه ټولنیز مخلوق بیا ځان ځانته ځانګړتیاوې هم لري، ځکه، چې انسانان په تفاوت پیدا شوي او د همد غو ځانګړتیاوو د حکمت له برکته خو ځکه انسانان هم یو تر بله پېژندل کېږي، یعنې څه په تخلیقي لحاظ د پوستکې، رنګ او ژبې له مخه او څه په طبیعي لحاظ د دود، رسم او دستور له مخې نو ځکه خو مونږ احمد او محمود دواړه د هغوی د نومونو له برکته لومړی پېژنو او بیا د همدې بېلا بېلو نومونو له مخې د هر یوه ځانګړتیاوې دلته هم د لیکنې د لنډوني په خاطر له بېلګو ډډه کوو:

زمونږ پښتانه یو شمېر ډېرې پخې، کره او په اصطلاح د کانې کرښې ویناوې لري وايي له کلي وځه څو له نرخه نه. مخکې مو وویل چې زمونږ ښکلی ملك ویاړلی افغانستان ټولو نړیوالو سره ښې او وړ اړیکې لري، سره د دې چې پخپله افغانان، الهی او وضعي دواړه قوانینه لري او د ټولنې په سمبالونه او ورځنیو چارو کې ترې کار اخلي مګر بیا هم نړیوال وضعي قوانینو او میثاقونو ته پور احترام لري، دا چې مخکې مو وویل چې له نرخه مه وځه هغه په دې مانا نه چې ګوندې ټول نړیوال قوانین تر پښو لاندې او نفې کړو، په همدغه ځای کې غواړو چې د هغو ښاغلیو دیموکراتانو پام دې ټکي ته را واړو چې غواړي غربي، شرقي او یا د نورو هغو ملکونو په څېر دیموکراسي په رنځېدلي افغانستان کې پلي کړي چې اصلاً په کې ډېر انسانان د انساني تمدن او بې بندو باره دیموکراسۍ په نومونو او پلي کیدو د اشرف المخلوقاتو له دایرې وتي دي او د همدغې دیموکراسۍ د ضلالت له کبله د خور، مور او نورو محرماتو برسېره اوس د نر او ښځې تمیز هم نه شي کولای.

ښایي بې وزله افغان ولس د ښاغلیو ډیموکراتانو ډېر څه ومنې، د بیان آزادي، د انسان آزادي پخپله خوښه د مشر ټاکنه، د ښځمنو او سړیو ښوونه او روزنه، ساینس او ټکنالوژي، کمپیوټر، کیبل، موسیقي، لونګۍ، قره قل، پکول او نیکټایي او ډېر نور څه خو بیا هم دې خبرې ته راځو چې دغه ښاغلي دیموکراتان دې د یو څو ټنو په هوکړې نه تېروځي، د ټول ولس خو ښه دې په نظر کې ونیسي، زما په فکر د وروستي ارمان، ویشی او وای نه به مخکې فکر او ښه تدبیر ډېر ګټور وي. هم پخپله د ښاغلي دیموکرات له پاره او هم د دې رنځېدلي ولس له پاره. لنډه یې دا چې باید دغه نوم بې ځایه او بې مورده ونه کاره وو، او ګنې دا نوی نوم به هم د هغو تېرو په څېر پرته له یوه شعاره زمونږ دماغ، فکر او اولس ته هېڅ ورنه کړي.

ښایي بې وزله افغان ولس د ښاغلیو ډیموکراتانو ډېر څه ومني، د بیان آزادي، د انسان آزادي پخپله خوښه د مشر ټاکنه، د ښځمنو او سړیو ښوونه او روزنه، ساینس او ټکنالوژي، کمپیوټر، کیبل، موسیقي، لونګۍ، قره قل، پکول او نیکټايي ...

## دویم: د ملي تومونو اړونه:

پر ته دشکه ویلای شوو چې د نړۍ پر مخ به داسې هېواد نه وي چې د هغه هېواد ټول وګړي دې د یوقوم او یوې ژبې درلودونکي وي. ګورو نن سبا چې ځومره هېوادونه وخت په وخت د نړۍ پر مخ زیږي نو د مختلفو قومونو ژبو او خیلونو نه رغېدلي وي او دا ځکه، چې انسان یو ټولنیز او اجتماعي مخلوق دي، دا چې انسان ټولنیز شو نو طبیعي ده، چې د انساني اړتیاوو له مخې به خامخا د نورو انسانانو سره د خپل ژوند د اړتیاوو د رفع کولو په خاطر راشه درشه ولري، چې د همدغو لاملونو له مخې انسان، اړ دی چې د ځینو، سیاسي، مذهبي، اقتصادي او ... لاملونو په وجه له یوه ځایه و بل ځای؛ له یوه کلي بل کلي؛ له یوه ښاره و بل ښار ته لنډه دا، چې کله له یوه هېواده و بل هېواد ته وکوچېږي. هلته پاتې او بالاخره د وخت په تېرېدو سره د هغې خاورې هستوګن او ان طبع شي؛ نو د پورتنیو دلایلو په رڼا کې ویلای شوو ګران افغانستان چې د نړۍ پر مخ تر ټولو یو لرغوني، متمدن او با کلتوره هېواد دی، او د ښه شامته چې د دې خاورې اصلي، میرني او با کلتوره بچي (پښتانه) تر پنځو زرو کالو هم ور اخوا ثابت او ښکاره تاریخ لري په داسې حال کې چې د ننني نړۍ پر مخ ښایي د ګوتو په شمېر داسې قومونه وي چې د تاریخي شواهدو په رڼا کې زمونږ (افغان) سیال وي. دا، چې ګران افغانستان د خپل حساس تاریخي موقعیت له مخې او یا د یو شمېر نورو سیاسي او مذهبي پېښو له مخې تل په جنګ جګړو کې پاتې شوی نو لازمي ده چې د دغو پېښو په جریان کې په ځینې افغانان نورو سیمو او ځایونو ته تللي او میشت شوي وي او دا هم په داګه ویلای شو، چې د همدغو اقتصادي، سیاسي او مذهبي پېښو په نتیجه کې به یو شمېر نور قومونه هم دلته په ګران هېواد افغانستان کې میشت او هستوګن شوي وي او دا هم لازمي امر دی چې وایي (چیرې چې اوسي په خوی به دهغوسي) یا جز طابع کل د همدې وینا په رڼا کې په لنډه توګه ویلای شو، د نړۍ پرمخ چې نن سبا ځومره هېوادونه، موجودي د دغو هېوادونو د جوړېدا، پرمختګ ټینګښت او بقا لامل دا دی چې اقلیتونو، خپل خانونه او خپل حقوق پېژندلي، په خپلو حقوقو یې اکتفا کړې، د مشرانو د حقوقو درناوی یې کړی او په نتیجه کې یې داسې یو پیاوړی هېواد جوړ شوای چې په هغه کې ټول ملي مسایل د ملي یووالي او پیوستون په خاطر د ملك د اکثریت په خوښه شوي یعني رسمي او ملي، فرهنګي، مذهبي او سیاسي ویاړونه او نښې نښاني چې نن سبا یې د نړۍ ملکونه لري ټول هغه دي، چې د هغه ملك د ډېرې وګړیو ښکارندوي کوي. خوله بده شامته چې زمونږ ګران هېواد له پیړیو پیړیو را پدې خوا د یو شمېر معلوم الحال دښمنانو له خوا د ډول، ډول دسیسو تر ښکار لاندې دی.

د سیاسي او مذهبي دښمنیو تر څنګ، فرهنګي او کولتوري دښمني هم کېږي او تر ټولو د افسوس خبره دا ده، چې دغه فرهنګي درغلۍ هم په خپله یو شمېر روڼ اندي په اصطلاح افغانستانیان کوي. په خولې د ملي مشارکت چغې وهي مګر خپلو کړنو ته نه ګوري چې عملاً د دې یو موټي او یو ملت د شیندلو او تجزیې په لورې روان دي! او په دې ډول د یو موټې او یو ملت ګران افغانستان د تاریخي او ملي دښمنانو ارمانونه په داسې حالکې پوره کوي چې د همدې خوار او ځپل شوي هېواد د خوړوء اوبو او ان له اکسیجن نه د خپل ژوند د بقا له پاره در ګرده ګټه پورته کوي. د همدې خوار هېواد له برکته لوستي شول لنډه دا چې د همدې هېواد له برکته پر چوکیو او منصبونو شول، مګر دېغه چې اوس هم په هوش شي د هېواد د ملي یووالي او پیوستون په خاطر په عمل کې د افغان او د ځان دښمني پرېږدي د ټول ملك ملي ګټې په نظر کې ونیسي، زمونږ د کولتوري او ثقافتي تاریخي دښمنانو توطې شنډې کړي، او هېڅاته دا حق ورنه کړي چې زمونږ د ملي یووالي او پیوستون په خاطر زمونږ ملي او منل شوي نومونه او ځلي، د دانشګاه، دانشکده، مشارکت ملي او ... باندې واړوي.

# کاندیدان

را مخکې شه کاندید شه ښه شخصیت یې مکمل
څوک نشته داسې بل
ملت په غوړو کوڼ دی سترګې نه لري ړانده دي
رمې غوندې پراته دي
نه ستا په خیانت پوه دي نه په دا چې ته یې غل
څوک نشته داسې بل
دې خلکو ته ویل شوي چې ستا شپږ سوه مانۍ دي
خورې په کې غالۍ دي
پوهېږو چې ته پاک یې دا د کفر دي یو چل
څوک نشته داسې بل
خیر که زر سره قربان شول خو چوکۍ نه شې تېر
نفوس دې زمونږ ډېر
قومونه په قومیت او یا په سیمه کړه را خپل
څوک نشته داسې بل
خیر که څو افغاني خویندې ستا دورې کړې بې سیرته!
سبحان الله ته پاک یې، ستا یاران وو بې همته
داستا په کړنو ورو، ورو برائت اخلي کارمل
څوک نشته داسې بل
یو څو میخونه څه دي چې تا ټک وهل سرو کې
د حق په ورځو شپو کې
پسونه حلالې ته دي پیدا دا دی متل
څوک نشته داسې بل
دا ملک چې په قومونو او صوبو باندې تقسیم شي
وحدت به مو ترسیم شي
نظر دې ګټور دی په قومیت به یې کړی را شل
څوک نشته داسې بل
تر څو به د افغان په نوم یادېږم دا شمله صدۍ ګوره
نور نه منمه ورورہ!
نن حق دیموکراسي ده، ځه الله شه د ستا مل
څوک نشته داسې بل

